# شريعت

ورځپاڼه

د افغانستان اسلامي امارت مرکزي نشراتي ارګان

د تأسيس کال ۱۳۷٤ هـ.ش/ دوهم پړاو / ٦۷۳ ګڼه / دوشنبه ۰٤ شعبان‌المعظم ۱٤٤٦ هـ.ق / د سلواغې ۱۵مه ۱٤۰۳ هـ.ش / ۰۳ فبروري ۲۰۲۵ ميلادي


## د ډالرو پر وړاندې د افغانيو ارزښت ورځ تر بلې لوړيږي



د ورکړل شويو شمېرو له مخې تېره اوونۍ د افغانيو پر وړاندې د يوه ډالر بيه له ۸۱.۵۰ افغانيو څخه ۷۳.۲۹ افغانيو ته ټيټه شوې. د خپرو شويو شمېرو مطابق د رواني سلواغې مياشتې په ۷مه د افغانستان پولي بازارونو کې ډالر په ۸۱.۵۰ افغانۍ تبادله کېده، په داسې حال کې چې د افغانستان بانک په خپل نوي راپور کې ويلي، چې د ډالرو بيه ۷۳.۲۹ افغانيو ته را ټيټه شوې. د ډالرو پر وړاندې د افغانيو بيه داسې مهال را ټيټيږي، چې د افغانستان بانک مسئولينو ويلي و، ډالرو بيې لوړوالی د هېواد په اقتصاد پورې اړه نه لري... ۳مخ

مولوي عبدالسلام حنفي:

## اقتصادي او ستراتيژيک پر مختګ د اداري چارو په ساده‌والي پورې اړونديږي



د رييس‌الوزراء اداري مرستيال مولوي عبدالسلام حنفي وايي، د ستراتيژيکو اقتصادي برنامو پلي کول د اداري بهيرونو ساده‌کولو او يوشان‌کولو ته اړتيا لري.

د ارګ د خبرپاڼې له مخې، د رييس‌الوزراء اداري مرستيال د وزارتونو او امارتي ادارو د حمايوي ساده‌کولو او يوشان‌کولو د پروسې د پرانيستې په غونډه کې ټينګار کړی، چې د دې بهير څخه پرته د ستراتيژيکو اقتصادي پرمختګونو ترلاسه کول ناشوني دي. ۳مخ

## ۴۳۱۱ زاره او هوا ککړوونکي موټر په کور شول



د چاپېريال ساتنې ملي ادارې مسئولين وايي، چې د ترافيکو عمومي رياست سره په همکارۍ، دوی په تېرو درېيو مياشتو کې په هېواد کې د هوا د ککړتيا له امله د څلور زره او ۳۱۱ لوګيو خپروونکو موټرو فعاليت بند کړی دی.

د چاپېريال ساتنې ملي ادارې د مسلکي او پاليسۍ مرستيال زين العابدين عابد د هوا د ککړتيا د مخنيوي په اړه په يوه خبري غونډه کې ووېل چې په ژمي کې د ډبرو سکرو، لرګيو، پلاستيک، ټايرونو او ربړ سوځول په کابل کې د هوا د ککړتيا لامل شوي دي.

د غونډې په جريان کې، چارواکو زياته کړه چې د هوا د ککړتيا د مخنيوي لپاره لوړ پوړيزې... ۳مخ

## ۱۰۰۰ جريب زمين در بغلان به پارک صنعتی اختصاص داده شد



هزار جريب زمين به منظور ساخت پارک صنعتی در بغلان مشخص شده است.

ولی امرخيل مسوول رسانه يی رياست زراعت، آبيار و مالداری بغلان، به آژانس باختر گفت که اين زمين در همآهنگی با هيئت رياست اراضی وزارت زراعت، آبيار و مالداری، در منطقه چمقلا بغلان مرکزی مشخص شده است.

وی افزود که اسناد تثبيت هزار جريب زمين به منظور ساخت پارک صنعتی بغلان، در حضور هيئت موظف ترتيب شده و به خاطر اجراات بعدی به مرکز ارسال خواهد شد.

## لوګر کې سلګونو ځوانانو ته د کار زمينه برابره شوې



**شريعت:** اسلامي امارت د بېکارۍ د له منځه وړولو لپاره زرګونو ځوانانو ته په دولتي ادارو، خصوصي سکتور، د کانونو په استخراج او بېلا بېلو پروژو کې د کار زمينه برابره کړې ده.

د لوګر کار او ټولنيزو چارو رياست د مسؤلينو په وينا، چې ۱ زره ۵ سوه ۷۴ تنو ته د کار جوازونه ورکړل شوي... ۳مخ

## سرمقاله

## اظهارات بی‌اساس تأثيری بر زندگی شهروندان ما نخواهد گذاشت

درجهانی که ما به سر می‌بريم، رسانه‌ها حرف نخست را می‌زنند، اما با تأسف شماری از رسانه‌های بيرونی در خدمت استکبار جهانی قرار دارند و وظيفه‌شان نه تنها تطبيق برنامه‌های مخوف آنان در جهان سوم است، بلکه شايعه پراگنی و به چالش کشيدن کشورها و نظام‌هايی است که هيچ‌گاهی زير يوغ استکبار جهانی نرفته، مطابق خواست و ايديولوژی ملت‌های خود به حيات سياسی خويش ادامه می‌دهند که اين ويژگی به ميل استکبار جهانی سازگار نبوده، سعی می‌کنند تا با استفاده از رسانه‌های وابسته خود، آرامش ملت‌های بيگانه‌ستيز را به چالش بکشند، اين ترفندها برملت‌های مانند افغانستان که در بيگانه ستيزی و آزاد زيستن، همچنان تحمل دشواری‌ها، شهره آفاق اند، هيچ تأثيرنخواهد گذاشت.

به تازگی شماری از سران کشورها و نهادهای مغرض بين‌المللی، با ادعاها و اظهارات واهی و بی‌اساس، در تلاش اند تا ملت شريف و آزاده افغانستان را به خاطرحمايت بی‌دريغ شان از امارت اسلامی، به چالش بکشند و فضای آرامش و بدون دغدغه امنيتی امروزی را مکدر سازند، اما غافل از اين اند که ملت شريف افغانستان با پشت سر گذاشتن بيش از چهار دهه خشونت، جنگ، تجاوز و مقاومت در برابر اين همه ناملايمات و نا هنجاری‌ها، امروز يک آرامش سراسری و استقلال سياسی را تجربه می‌کنند به اين شايعه پراگنی و اظهارات غيرمسئولانه هيچ‌گاهی وقع نخواهند گذاشت، بلکه با اين گونه اظهارات غيرمتعارف و بی‌اساس، ارزش و اهميت نظام حاکم گسترش و حمايت‌های مردمی نيز بيشترخواهد شد، دقيق است که دشواری‌ها و ناسازگاری‌های تحميلی اقتصادی، در کوتاه مدت تأثيرمؤقتی بر زندگی مردم ما خواهد گذاشت، اما اين دشواری‌های اقتصادی و سياسی، بدون‌شک زود گذر بوده و در آينده نزديک مديريت خواهد شد، زيرا يگانه موضوعی که در نزد ملت ما با ارزش است و به خاطر آن قربانی‌های زيادی نيز داده اند، آزادی، آزاد زيستن و استقلال سياسی است که بايد به آن ارج گذاشت و اين نعمت الهی... ص۳

## تېره مياشت د وسپنې پټلۍ له لارې څه باندې ۴۰۰ زره متريک ټنه انتقالات شوي



د ټولګټو وزارت وايي، چې د تېرې مرغومې مياشتې په ترڅ کې د وسپنې پټلۍ له لارې ۴ سوه زره او ۸۸۷۶ متريک ټنه انتقالات شوي دي.

د ياد وزارت وياند محمد اشرف حق‌شناس د يوې خبرپاڼې په خپرولو سره ويلي، چې د حيرتان بندر له لارې ۳ سوه زره ۲۳۲۷ ټنه، د اقينې بندر له... ۳مخ

## در اين شماره:



## رواني ناروغ ته د زابلې نجلۍ نکاح فسخه شوه




د امر بالمعروف، نهې عن المنکر او د شکايتونو اورېدلو وزارت وايي، چې د زابل په نوبهار ولسوالۍ کې د هغې يتيمې نجلۍ د نکاح مخنيوی شوی، چې نکاح يې په زور تړل کېده.

ياد وزارت په خپره کړې خبرپاڼه کې ويلي، چې د يادې نکاح مخنيوی په داسې ... ۳مخ

## بلخ کې د ځمکې شخړه هواره شوه

د سرحدونو، قومونو او قبايلو چارو وزارت وايي، د بلخ ولايت په چمتال ولسوالۍ کې د دوو کورنيو ترمنځ اووه کلنه شخړه د يوې غونډې په ترڅ کې حل شوه.

په دې غونډه کې د ياد ولايت د سرحدونو، قومونو او قبايلو چارو رياست مسئولينو... ۳مخ



## ټرافيکي پېښو يو تن مړ او ۲ نور ټپيان کړل



د پروان مسئولين وايي، په ياد ولايت کې د دوو ترافيکي پېښو له امله يو تن مړ او دوه نور ټپيان شوي دي.

د ياد ولايت د امنيې قوماندانۍ وياند ويلي چې لومړۍ پېښه د پروان د مرکز چاريکارو... ۳مخ

# د افغانستان غالۍ د صادراتو له ټولو مهمه برخه جوړوي

**حیات الله حلیم**

دا یو څرګند حقیقت دی چې د کورنیو تولیداتو او محصولاتو وده، د ملي اقتصاد د تقویې بشپړ ضمانت کوي، خو په دې شرط چې په هغه فورمول وده ورکړل شي چې د یوه حاذق په ملي ګټو مین او زړه سواندې ذهن زېږنده وي ځکه همدا اوس وینو، چې اسلامي امارت په افغانستان کې د صادراتو پراختیا ته په خپل ټول توان د ودې او انکشاف ورکولو په حال کې دی پخوا تر دې مو په رڼو سترګو لیدل چې د هېواد په اقتصادي وده خصوصاً د صادراتو په برخه کې د یوه داسې نامرئي (دیو) سیوری غوړولی و، چې نه یوازې د صادراتو په برخه کې بلکې د ملي اقتصاد د ودې پراختیا او پرمختیا په ټولو برخو کې یې په مختلفو ملي او نړیوالو بهانو او پلمو د پرمختګ مخه ډب کړې وه، افغانستان د نورو پرېمانه اقتصادي زېرمو تر څنګ په صنعتي لحاظ هم له پخوا څخه مختلف توکي تولیدول، چې ښه نړیوال بازار یې درلود په ځانګړې ډول د قالینو صنعت چې له پخوا زمانو څخه د هېواد په شمالي ولایتونو کې په ساده او د لومړنیو دستګاوو په ذریعه په لوړ او منل شوي نړیوال ستندرد پرمخ روان و او دغه قالینو نړیوال شهرت او ترت بازار درلود، که مبالغه ونه شي د قالینو صنعت افغانستان نړۍ ته ورپېژندلی و، ځکه آسیایي، امریکایي او اروپایي هېوادونو کې یې لوړ مارکیټ درلود دری نیمې لسیزې د مخه په ملي سوداګرو دا شرط کېښودل شو چې د صادراتو او وارداتو انډول به برابروي یانې په کومه اندازه چې واردات لري په هماغه تناسب باید افغاني تولیداتو او محصولاتو ته هم په نړیوالو مارکیټونو کې د خرڅلاو بازار وموندل شي دا یو پر ځای ګام او اقدام و خو دغه انډول د ملک د ناخوالو له وجې ډېر دوام ونه موند یوازې افغاني قالینې وې چې په هر ډول له دروازې او دوربچې به له ملکه وتلې ځکه اهمیت او کیفیت یې درلود، که چېرې اوس هم په صادراتو او وارداتو کې بیلانس انډول شي نو نه یوازې په دې صورت کې به په ملي سوداګرو او اسلامي امارت د عام ولس باور زیات شي بلکې د هرې برخې مولدین به دې ته وهڅېږي چې خپل تولیدات زیات کړي، په دې کې شک نشته چې د صنعتي توکو په ډله کې افغاني قالینو خپل پخوانی نړیوال شهرت تر اوسه پر ځای ساتلی ځکه دا قالینې به امریکا، اروپا او آسیایي هېوادونو ته تللې او د یادو ملکونو په سوداګریزو مارکیټونو یې ډېر اخیستونکي درلودل او هر اخیستونکي به په بازار کې ځان په دې یقیني کاوه چې افغاني قالینه یې اخیستې ده، ځکه چې افغاني قالینې د کیفیت او ښکلا له پلوه په ډېر محنت اوبدل کېدې، نو ځکه به یې د اوږدې مودې لپاره پایښت هم درلود او مستهلکینو به په مارکیټونو کې خوښولې.

پخوانۍ قالینې له اصیلو افغاني اومو موادو اوبدل کېدلې، ځکه هغه وخت د قالینو جوړولو لپاره اومه مواد له نورو هېوادونو څخه نه وارېدل او یوازې اصل افغاني مواد چې زیاتره د مېږو (سپینې وړۍ) استعمالېدې ځکه سپینه وړی د نورو وړیو په پرتله رنګ ژر اخلي مانا دا چې هر رنګ چې ورکوې ژر یې نه خاموي، نو ځکه د سپینو وړیو اصالت او مفیدیت هم په دغه اصل کې نغښتی اوکله ناکله یې خالص وریښمن هم په ترکیب کې ور اضافه کېدل، خو پخوانۍ ستندرد قالینې اوس په افغانستان کې څوک نه شي استعمالولای ځکه په ډېره لوړه بیه تمامېږي او اوس زیاتره له وارداتي اومو موادو څخه ، نه یوازې په افغانستان بلکې په ټوله نړۍ کې د قالین اوبدلو صنعت چالان دی او اکثره اومه مواد یې ګازي دي چې له نورو هېوادونو څخه واردېږي.

که څه هم د قالین اوبدلو صنعت اوس د پخوا په پرتله ډېر پراخه شوی پخوا به یوازې د هېواد په شمالي ولایتونو کې قالینې اوبدل کېدې اوس د هېواد په هر ولایت کې دغه صنعت لاره موندلې ده، د ولایتونو په کچه له ټولو لوی کاروبار د ننګرهارپه ولایت کې روان دی.

په پخواني ډیزاین سرې ګلدارې قالینې اوس کمې لیدل کېږي او د قالینو ډیزان او ګلونو اوس په ښکلاییز ډول بشپړ بدلون موندلی او تقریباً له سلو څخه په زیاتو ډیزاینو کې اوبدل کېږي، خو د پخوانیو قالینو په اړه هم کله ناکله د قالین بافانو لخوا د متقاضیانو فرمایشونه اخیستل کېږي چې د یوې میاشتې اویا د شلو ورځو په اوږدو کې فرمایش ورته سپارل کېږي.

د افغاني قالینو دصنعت په اړه مهمه ستونزه دا هم ده کله چې افغانان د روسي اشغال له لاسه پردیو هېوادونو او په تېره بیا ختیځ پاکستان ته په کډوالۍ اړ ویستل شول نو د شمالي ولایتونو زیاتره وګړي هم پاکستان ته ولاړل او د قالینو اصیل صنعت یې هم له ځان سره یووړ کله چې د پاکستاني کړۍ د افغانانو دغه اصیل صنعت ته متوجې شوې نو په ډېره بېړه یې د افغانانو په همکارۍ دغه صنعت ته په خپل ملک کې وده ورکړه او خپل پریمان کسان یې د افغانانو په شاګردۍ و ګمارل، تر هغه چې داسې وخت هم راغی چې د افغانانو په لاس په پاکستان کې اوبدل شوې قالینې د پاکستاني صنعت په نامه نړیوالو بازارونو ته عرضه شوې، خو ستونزه داوه چې پاکستانیانو زموږ د قالینو صنعت د خپلو بې کیفیته اومو موادو په ذریعه بې کیفیته کړ، مهمه خبره داوه چې په بهر کې بیا دا ټولې قالینې د پاکستان په نوم پلورل کېدې.

# د مبتذلو او ناروا رسنیو زیانونه

**مولوي نورالحق مظهري**



اسلام او مسلمانانو پر ضد فکري جګړه پر مخ بیایي ځکه نو کوښښ کوي له هرې ذریعې په خپله ګټه او د اسلام په تاوان استفاده وکړي چې یوه د هغو ذریعو څخه مبتذلې او نااهله رسنۍ دي؛ د اسلام دښمنان کوښښ کوي چې له هر طرفه پر مسلمانانو فکري او فرهنګي یرغل وکړي چې د دې کار لپاره د دوی لومړی انتخاب رسنیز فعالیت دی چې په هر اړخیز ډول یې په مسلمانانو کې د هر ډول فساد خپرولو لپاره کاروي چې په نتیجه کې همدغه رسنۍ د اسلام د دښمنانو لپاره په شعوري یا غیر شعوري ډول د فکري جګړې یوه وسیله او ذریعه جوړېږي چې پر مټ یې د اسلام پر ضد ګڼ شمېر نشرات کوي چې ښېلکه یې پر اسلامي هېوادونو د کفري امپراتوریو له نظامي یرغل سره هم مهاله فکري یرغل دی چې تل یې په لومړي قدم کې د رسنیو په ذریعه کړی دی.

د دیني او کلتوري ارزښتونو تخریب او سپکاوی:

مبتذلې رسنۍ د پروپاګند کولو او درواغو ویلو له لارې کوښښ کوي چې دیني او کلتوري ارزښتونه تخریب کړي او سپکاوی یې وکړي؛ که د رسنیو تاریخ مطالعه کړو دا به راته ثابته شي چې غلطو رسنیو په خلکو کې د مقدساتو د ارزښت کمولو په هدف د دیني او فرهنګي مقدساتو ډېر سپکاوی کړی او مسلمان شخصیتونه یې په ډېرو بدو نومونو نومولي، چې له ټولو لویه بېلګه یې پر مجاهدینو د تروریست نوم ایښودل دي او دیني علماء په سادګۍ او شرارت تورن کول دي. د عثماني خلافت په وخت کې چې مسلمانانو ډېر پرمختګ کړی و، یهودانو او منافقینو د همدغو رسنیو په مرسته د خلافت د مشرانو پر ضد منفي تبلیغات کول او په خلکو کې یې ډول ډول بې ځایه شائعات خپرول آن تر دې چې د عثماني خلافت سلطان عبدالعزیز یې بدنام کړ او خلک یې د هغه پر ضد را وپارول تر څو خلک دوکه کړي، د سلطان عبدالعزیز پر ضد یې پاڅون وکړ د منافقینو په دسیسه یې هغه عزل کړ او بیا یې په مرموز شکل وواژه.

د دولت او ملت تر منځ واټن پیدا کول:

اسلام دښمنې رسنۍ تل کوښښ کوي چې د حاکم اسلامي نظام او خلکو تر منځ واټن پیدا کړي ځکه نو تل د نظام د ضعف نقطې بیانوي او لاس ته راوړنې یې پټوي او کله ناکله بیا د سیاسي مبصرینو په نوم ځیني سیاسي منحرفین مېلمانه کوي تر څو په خپلو غلطو تحلیلونو خلک دوکه کړي او د نظام پر ضد یې را وپاروي.

ټولې انځوریزې، غږیزې، چاپي او ټولنیزې رسنۍ د نشراتو لپاره هغه اسباب او ذرایع دي چې هم ښه استفاده ورڅخه کېدلای شي او هم بده استفاده، خو کله چې رسنۍ فاسدې شي یا د فاسدو انسانانو لاس ته ولوېږي بیا نو ډېر فسادونه ور څخه پیدا کېږي او د ټولنې لپاره ډېر زیانونه لري، چې موږ یې ځینې عمده زیانونه په لاندې ډول بیانوو:

اخلاقي فساد:

د مبتذلو او ناروا رسنیو په سبب په ټولنه کې اخلاقي فساد وده کوي چې د ټولنې هر فرد په خاصه توګه ځوانان په اخلاقي فساد روږدي کېږي چې بالآخره ټول اخلاقي ارزښتونه له پامه غورځول کېږي او خلک د فحشاء او بې حیایۍ لوري ته بېول کېږي چې په تاریخي لحاظ یې لویه بېلګه د رومیانو امپراتوري ده چې مبتذلو نمایشي لوبو او د فحشاء خپرونو په ټولنیز ډول په اخلاقي فساد کې ډوبه کړه او زموږ په زمانه کې یې بېلګه له امارت څخه مخکې زمانه وه چې منفي رسنیزې آزادۍ خلک په ډول ډول فحشاء او ابتذال باندې اخته کړل.

**د کورني نظام ګډوډېدل:**

د نا اهلو رسنیو د نشراتو په سبب کورنی نظام سره ګډوډېږي ځکه دوی داسې نشرات کوي چې د انسانانو ترمنځ حقوقي تړون له منځه وړي او یو انسان د بل انسان حقوق نه پرځای کوي چې په سبب یې د پلار او زامنو تر منځ، د کوچنیانو تر منځ، د مېرمنې او خاوند تر منځ او د خپلوانو تر منځ نفرتونه او کرکې پیدا کېږي چې لویه بېلګه یې غربي ټولنه ده چې یادو حقوقو ته په کې هېڅ پاملرنه نه کېږي بلکې د یوې سروې پر اساس په نولسمې او شلمې پېړۍ کې په اروپا کې د طلاق ډېرېدلو او کورني دودیز نظام کمزوري کېدلو سبب همدغه مبتذلې رسنۍ ښودل شوې دي.

فکري او سیاسي مسمومیت:

ناروا رسنۍ د خلکو فکرونه او ذهنونه تخریبوي ځکه نو په ټولنه کې فکري او سیاسي انحراف رامنځته کېږي چې له امله یې د خلکو فطرتي او اسلامي باورونه ضعیفېږي او د اسلامي هویت او اسلامي سیاست سره خلک بېګانه کېږي چې بیا نو خلک د اصلاح او اسلامي نظامونو دښمنان جوړېږي چې لویه بېلګه یې په منځنۍ اسیا کې د کمونیستي شوروي اتحاد تبلیغات وو چې د خلکو له فکرونو څخه یې د اسلام او اسلامي نظام سره محبت ایستلی او داسې چاپېریال یې حاکم کړی چې په نظامي ډګر کې روس د منځنۍ اسیا له هېوادونو وتلی، خو په فکري او سیاسي لحاظ اوس هم ورباندې حاکم دی ځکه نو د هغه ځایونو په خلکو کې د اسلامي نظام د راتللو لپاره د انقلاب او پاڅون هېڅ څرک نه لیدل کېږي. له بلې خوا څخه فاسدې رسنۍ د فکري مسمومیت له لارې د خلکو فکرونه دومره فاسد کړي چې آخر خلک د درواغو ښکار شي او د لویو حقائقو څخه انکار کوي.

ټولنیز تاوتریخوالی او د جرایمو ډېرېدل:

د ناسمو رسنیو په سبب په ټولنه کې د جرمونو کچه ډېرېږي ځکه دوی چې کومې ناوړې خپرونې یا سریالونه نشروي له هغو څخه خلکو ته د جرم د کولو نقل ورکوي او خلک په عملي ډول هغو جرمونو ته لاس اچوي چې دوی یې خلکو ته د تمثیل یا ډرامې په شکل نشر کوي؛ که په نړۍ کې د جرمونو او تخلفاتو نوعیت ته وکتل شي ډېری یې خلکو د فلمونو او سریالونو څخه زده کړي، چې یوه نمونه یې اختطاف دی، د اختطاف تاریخ ډېر اوږد دی خو زموږ هېواد ته اختطاف هغه وخت راغی چې په جمهوریت کې خلکو ناروا ټلوېزیونونو او خارجي سریالونو ته مخه کړه او په هغو کې یې د اختطاف چلونه او طریقې ولیدلې؛ بله لویه بېلګه یې د امریکا د هالیوډ مبتذل فلمونه دي چې۱۹۲۰م کلونو را په دې خوا یې په ټولنه کې په سبب ډېر تاوتریخوالی او جنایتونه را منځ ته شوي دي.

د ځوان نسل تباهي او بربادي:

د فاحشو رسنیو په سبب ځوان نسل د اصلاح، پرمختګ او علم پر ځای شهواتو او اخلاقي انحرافونو ته مخه کوي چې ورسره ځوان نسل د بربادۍ او تباهۍ لوري ته روانېږي؛ د تاریخ پوهانو په نظر پر اندلس د مسلمانانو د حاکمیت د زوال یو لامل په ځوانانو کې د فحشاء او مبتذلو سندرو خپرېدل وو، چې ځوانان یې په عبثو شیانو روږدي کړل او د جهاد او قربانۍ احساس یې له ځوانانو څخه واخیست چې دا شی موږ اوس هم په ځوانانو کې لیدلای شو؛ زموږ په زمانه کې په ځینو رسنیو کې ځینې خپرونې، سندرې، غیر شرعي تمثیلي ټوټې، فاحش فلمونه او په خاصه توګه له ټولنیزو رسنیو څخه ناوړه استفاده ځوانان د هر ډول مثبتو انګېزو څخه لیرې کړه بلکې د ځوانانو وجدان، عقل او علمي استعداد یې وواژه.

د دښمنانو لپاره د فکري جګړې وسیله **ګرځېدل:**

په دې خاطر چې د اسلام دښمنان تل د

# تاپی؛ رویایی که به واقعیت پیوست

**رحمت‌الله فیضان**



پروژه خط لوله گاز تاپی (ترکمنستان، افغانستان، پاکستان، هند) در دهه ۱۹۹۰ میلادی، در دوران حاکمیت نخست امارت اسلامی افغانستان مطرح شد، اما به دلیل چالش‌های مختلف و عدم ثبات سیاسی در کشور، تا بازگشت مجدد امارت اسلامی به تأخیر افتاد.

پس از سال‌ها انتظار، در سال ۲۰۲۴ کار عملی این پروژه در خاک افغانستان آغاز شد. در هفته‌های اخیر، روند لوله‌گذاری تاپی در هرات با سرعت ادامه دارد و تاکنون بیشتر از شش کیلومتر از مسیر این خط لوله در خاک افغانستان اجرا شده است. پیشرفت عملی این پروژه، باعث خرسندی مردم هرات شده است.

امارت اسلامی افغانستان به‌طور کامل متعهد به تأمین امنیت و فراهم‌سازی تسهیلات لازم برای اجرای پروژه تاپی است و به هیچ فرد یا گروهی اجازه نخواهد داد که امنیت این پروژه را به خطر بیندازد.

این پروژه، همچون شاهرگ اقتصادی افغانستان، نقش مهمی در کارآفرینی و رونق اقتصادی کشور ایفا خواهد کرد. همچنین، تاپی یک منبع بزرگ تأمین انرژی در کشور، به‌ویژه در ولایت‌های هرات، فراه و قندهار خواهد بود که می‌تواند در بخش ساختمان های رهایشی و فعالیت‌های صنعتی مورد استفاده قرار گیرد. افزون بر این، پروژه تاپی ده‌ها فرصت شغلی مستقیم و غیرمستقیم برای مردم ایجاد خواهد کرد.

افغانستان سالانه حدود ۵۰۰ میلیون دالر از حق ترانزیت گاز این پروژه درآمد خواهد داشت. این مبلغ می‌تواند در توسعه زیرساخت‌ها، اجرای پروژه‌های عمرانی و بهبود شرایط زندگی مردم به کار گرفته شود.

بخشی از گاز عبوری این خط لوله برای مصرف داخلی افغانستان اختصاص داده شده است و می‌تواند مشکل کمبود سوخت را در ولایت‌های غربی، از جمله هرات، فراه و قندهار، کاهش دهد. با اجرای پروژه تاپی، افغانستان به‌عنوان پل ارتباطی انرژی در منطقه شناخته خواهد شد و جایگاه این کشور در تعاملات منطقه‌ای و همکاری‌های اقتصادی تقویت می‌شود.

## ۱۴۱ تن افغان از زندان‌های پاکستان...

وارد کشور شده‌اند.
در خبرنامه آمده که هریک از این زندانیان از ۲ تا روز را در «حاجی‌کمپ» از محلات نگهداری مهاجرین افغان توسط پولیس پاکستان، سپری کرده‌اند.

این در حالی است که در جریان سال‌جاری هجری خورشیدی هزاران شهروند مهاجر افغان از زندان‌های پاکستان آزاد و به کشور برگشتانده شده‌اند.

## تېره میاشت د وسپنې پټلۍ له لارې...

لارې ۲۷ زره ۴۵ ټنه، د تورغونډۍ بندر له لارې ۷۰ زره ۵۶۴ ټنه او د خواف ـ هرات له لارې ۸ زره ۹۴۰ ټنه توکي وارد او صادر شوي دي. د نوموړي په وینا، د تېرې میاشتې په لړ کې ۱ زر ۶۹۸ ټنه ترانزیټ او صادرات شوي، چې لویه برخه یې وچه مېوه، کینو، وریجې او د انارو جوس دي.
د معلوماتو له مخې، د افغانستان د وسپنې پټلۍ له لارې په تېرو ۹ میاشتو کې شاوخوا ۳.۲ میلیون متریک ټنه انتقالات شوي دي.

## تجهیز کتابخانه مرکزی پوهنتون...

فارت ترکیه در افغانستان و داکتر عرفات دنیز، رئیس دفتر انسجام و هماهنگی جمهوری ترکیه ( تیکا) در در هرات، تجهیز و به مسئولان پوهنتون تحویل داده شد.
رئیس پوهنتون هرات، از همکاری دفتر تیکا برای تجهیز کتابخانه مرکزی و سالون کنفرانس‌های پوهنځی اداره و پالیسی عامه قدردانی کرده و تاکید کرد که کشور ترکیه همواره در کنار ملت افغانستان بوده و همکاری‌های بسیاری در زمینه‌های مختلف انجام داده است.
در همین حال دکتر علی اوزگون اوزتورک، رئیس دفتر آسیای میانه و قفقازها می‌گوید که بیشتر پروژه‌های اساسی نهادشان بر پوهنتون‌ها و مراکز علمی متمرکز است.
داکتر اوزتورک همزمان با تکمیل این پروژه مهم که شامل تجهیز کتابخانه مرکزی و سالون کنفرانس‌های امیر علی‌شیر نوایی می‌شود گفته است که در آینده نیز پروژه‌های بیشتری را در پوهنتون هرات روی دست دارند.

## فاریاب کې هم صنعتي ښارګوټي ته ځمکه...

اوبولګولو او مالداري رییس ته ویلي، چې ټاکل شوي پلاوي د عالیقدر امیرالمؤمنین حفظه الله تعالی د حکم پر اساس د دولت اباد ولسوالۍ اړوند د اندخوی- میمنې پر لویه لاره د صنعتي ښارګوټي د جوړېدو لپاره ۱۰۰۰ جریبه ځمکه ځانګړې او تثبیت کړې ده.
د فاریاب اقتصادي شنونکي په دې ولایت کې دا ګام د دې ولایت په صنعتي ځانبساینې کې یو مهم بدلون بولي او وایي، چې تمه کېږي په دولت‌آباد کې د صنعتي ښارګوټي جوړېدو سره به سلګونو کسانو ته د کار فرصتونه برابر شي، د بومي تولیداتو د ودې لامل شي او د وارداتو کچه به راټیټه کړي.
د یادونې وړ ده، چې په دې وروستیو کې د هېواد په بېلابېلو ولایتونو کې د صنعتي ښارګوټو د جوړولو لپاره د عالیقدر امیرالمؤمنین حفظه الله د ځانګړي فرمان پر اساس زرګونه جریبه ځمکه ځانګړې شوې، چې د داخلي تولیداتو د زیاتېدو او اقتصادي پرمختګ لپاره یو مهم ګام ګڼل کېږي.

## بلخ کې د ځمکې شخړه هواره...

په مشرۍ، قومي مشرانو او دیني عالمانو ونډه درلودله.
دغه شخړه چې د ښکېلو لوریو لخوا د ځمکې د ملکیت پر سر راپورته شوې وه او ترمنځ یې د ژورو جنجالونو او اختلافاتو ترڅنګ ګڼ مالي زیانونه لرل، وروسته له اوو کلونو د اسلامي امارت د مشرانو په هلو ځلو حل او دواړه خواوې د سولې په تغر سره کېناستې.
په ورته مهال د همدې ولایت په دولت اباد ولسوالۍ کې هم دوې مروري کورنۍ د خپلمنځي تاوتریخوالي او ژورو جنجالونو ورسته د سرحدونو، قومونو او قبایلو چارو ریاست د مسئولینو مصلحینو په هلوځلو پخلا شوې، چې لومړی د دواړو کورنیو له مشرانو سره جلا جلا غونډې وشوې، اختیارلیکونه ترې واخیستل شول او د یوې عادلانه پرېکړې له مخې یې سوله ییز ژوند پیل کړ.

## لوګر کې سلګونو ځوانانو ته د کار...

او په دنده ګمارل شوي دي.
دلوګر ولایت د کار او ټولنیزو چارو رئیس مولوي جان محمد محمد طلحه د شریعت ورځپاڼې خبریال ته ویلي: چې په تېرو لسو میاشتو کې ۱۵۷۴ ځوانانو ته د کار جوازونه وېشل شوي، چې ۱ زره ۲ سوه۱۶ یې نارینه ۳سوه ۵۸ یې ښځینه و چې په دندو ګمارل شوي دي.
ښاغلي محمد طلحه وایي، چې د کار او ټولنیزو چارو ریاست د فني او حرفوي زدکړو فعال لنډ مهاله مرکزونه لرو؛ چې هغه هېوادوال چې زده کړې یې نیمګړې پاتې وي او بېکاره وي، خیاطي، برښنایي توکو جوړول، فلزکاري، نجاري، موبایل جوړول، موټر سایکل، لبنیاتو او په تعمیراتو کې د برښنا د لاینونو نصبول په بېلا بېلو حرفو کې پروګرامونه دایرېږي چې له دې لارې زیاتو هېوادوالو ته د کار زمینه برابره شوې ده.
هغه زیاته کړه، چې په لوګر کې ۵۰۰ ځوانان له فني او حرفوي زده کړو څخه فارغ شوي دي وایي، چې په لوګر کې درې باب روزنتونونه لرو چې دا مهال په کې ۴۸۰ یتیمان ماشومان زده کړې کوي.
نوموړي وایي، چې لوګر کې څلورو امریتونه فعال دي چې له ټولنیز خوندیتوب، کار، حرفي او روزنې امریتونه دي د لوګر مجاهد ولس ته خدمات وړاندې کوي.
ده وویل چې ټولنیز خوندیتوب امریت د یتیمانو او بېوزلو هېوادو په برخه کې خدمات وړاندې کوي، چې د ۲۵۰۰یتیمانو شهرت یې خیریه بنسټونو او موسساتو ته ورکړی چې مرستې ورسره کېږي.
د لوګر ولایت د کار او ټولنیزو چارو رییس وویل، چې تېره اوونۍ د ۲۵۱ یتیمانو سره د هدف موسسې له خوا هر یتیم ته ۲۰۸۰۰ افغانۍ ورکړل شوي چې ۵۲ لکه افغانۍ کېږي همدارنګه تېره ورځ هم له ۴۰ یتیمانو سره د نوموړي موسسې له خوا هم مرسته تر سره شوه چې هر یو یتیم ته یې ۲۰۸۰۰ افغانۍ ورکړل شوې.
محمد طلحه زیاته کړه، چې په تېرو څو میاشتو کې له ۱۳۰۰ یتیمانو سره د ۶ سوه لکه افغانیو مرستې د خیریه بنسټونو څخه تر لاسه شوي او په نوموړو کسانو وېشل شوي دي.
د هغه په وینا چې په راتلوونکي نږدې وخت کې به لوګر ولایت کې شاوخوا ۱۰ زره ځوانانو ته د کار زمینه برابره شي.
د یادولو وړ ده چې د کار او ټولنیزو چارو وزارت په ټول هېواد کې د فني او حرفوي زدکړو ۵۲ فعال مرکزونه لري هر کال نږدې ۲۰ زره ځوانان فارغېږي او په خصوصي سکټور او دولتي ادارو کې په دندو ګمارل کېږي.

**سمیع الله مومند**

## پکتیا کې پر ۸۰ کورنیو د خیاطۍ...

موسسې څخه مننه کړې او له نورو موسساتو یې هم د ورته مرستو غوښتنه کړې ده.
د یاد وزارت ویاند سمیع الله ابراهیمي امارتي ورځپاڼو ته ویلي چې له ځینو موسساتو سره په همغږۍ دغو سیمو کې له وړاندې سروې شوې وه او هغو اړمنو سره مرستې شوې، چې د خیاطۍ مهارت یې زده و، خو د وسایلو نشتون له امله یې کار په ټپه ولاړ و.
د یادونې وړ ده چې څو ورځې وړاندې دغه وزارت ۳۵۰ تنه له فني او حرفوي زدکړو فارغ کړل.

**تاج محمد بهار**

## د ډالرو پر وړاندې د افغانیو ارزښت...

او اندېښنې وړ مسئله نه ده.
د افغانستان په بازارونو کې د ورکړل شویو شمېرو له مخې تېره اوونۍ د افغانیو پر وړاندې د یوه ډالر بیه له ۸۱.۵۰ افغانیو څخه ۷۳.۲۹ افغانیو ته ټیټه شوې.
اقتصادي شنونکي د حکومت له لوري په بازارونو سمه څارنه او د مناسبو پولي سیاستونو پلي کول د افغانۍ ارزښت لوړېدو لاملونه ګڼي.
د ډالرو پر وړاندې د افغانیو بیه داسې مهال را ټیټېږي، چې د افغانستان بانک مسئولینو ویلي و، ډالرو بیې لوړوالی د هېواد په اقتصاد پورې اړه نه لري او اندېښنې وړ مسئله نه ده.

## اقتصادي او ستراتېژیک پرمختګ...

په همدې حال کې، د اصلاحاتو او ملکي خدمتونو اداري رییس مفتي شهزاد نور راشد ویلي، چې د اسلامي امارت له حاکمیت راهیسې تر اوسه د هېواد د ۹۳۸ ادارو کاري پروسې ساده شوې دي. د ښاغلي راشد په وینا، د دې بهیر په لړ کې شاوخوا لس زره امارتي کارکوونکو ته د ظرفیت‌لوړونې برنامې هم پلي شوې دي.
دا په داسې حال کې ده، چې د اداري پروسو د حمایوي ساده‌کولو او یوشان‌کولو د برنامې له پرانیستې سره به خلکو ته ګڼې اسانتیاوې رامنځته شي.

## ۴۳۱۱ زاړه او هوا ککړوونکي...

ودانۍ، حمامونه، شرکتونه او نور ورته فعالیتونه هم څارل شوي دي او د چاپیریال ساتنې اصولو سرغړونکو سره قانوني چلند شوی دی.
په ژمي کې، د کابل هوا د بې کیفیته سون توکو لکه پلاستیک، زړو ټایرونو او ټیټ کیفیت لرونکي ډبرو سکرو د پراخ استعمال له امله سخته ککړېږي.
په کورونو او صنعتي مرکزونو کې د بې کیفیته سون توکو کارولو سربېره، د نفوسو وده او ډېر ساختماني کارونه، د کثافاتو د مدیریت د مناسب سیستم نشتوالی او په ښار کې د شنه ځای او ونو نشتوالی په کابل کې د هوا د ککړتیا نور لاملونه دي.

## د اطلاعاتو او کلتور وزارت مسئولینو،...

باید د افغانستان په اسلافو او مشاهیرو کتابونه ولیکي، تر څو راتلونکي نسل ته د تاریخ په بڼه پاتې شي، د اطلاعاتو او کلتور وزارت له لیکوالانو او ادیبانو څخه ملاتړ کوي، چې په دې برخه کې یې د ډېرو لیکوالانو کتابونه چاپ او د کتابونو ډېر نندارتونونه یې جوړ کړي دي، همدا راز له لیکوالانو څخه د ملاتړ په برخه کې یې د ولایتونو په کچه د غوره لیکوالانو لړۍ پیل کړې ده.
ښاغلي فراهي له لیکوالانو څخه وغوښتل، چې له اطلاعاتو او کلتور وزارت سره همکاري وکړي او له مسوولینو سره نېکې مشورې شریکې کړي.
د هنر او کلتور معین مولوي عتیق الله عزیزي د خپلې وینا په ترڅ کې وویل: د خوښۍ ځای دی، چې افغانستان کې د اصحابو کرامو د ژوند او قربانیو په اړه کتاب لیکل کېږي، په دې برخه کې دا اثر نایابه دی، ټول باید د خپلو اسلافو په اړه څېړنې وکړو، په ځانګړي ډول ځوانان باید دې برخې ته ډېره توجه وکړي.
د غونډې په پای کې مولوي مهاجر فراهي له لوري د کتاب مؤلف ته ستاینلیک ورکړل شو.

## رواني ناروغ ته د زابلۍ نجلۍ نکاح...

مهال کې شوی، چې د نجلۍ ناسکه وروڼو له لوري د هغې له خوښې پرته یو معتوه (ذهني ناروغ) ته ورکړل شوې وه.
د امر بالمعروف، نهې عن المنکر او د شکایتونو اورېدلو وزارت د محتسبینو په وینا، اسلام د نکاح په اړه روښانه لارښوونې لري؛ چې په هغې کې د هلک او جلۍ خوښه تر ټولو اړینه ده.
دا په داسې مهال ده، چې یاد وزارت له دې وړاندې هم په بېلابېلو ولایتونو کې د ګڼو غیر شرعي نکاحو مخنیوی کړی دی.

## ترافیکي پېښو یو تن مړ او ۲...

کې کې شوې چې په پایله کې یې یو کس ژوند بایللی دی.
وایي، په دې پېښه کې یوې کرولا ډوله موټر یو ۲۵ کلن ځوان وهلی چې بیا یې په روغتون کې ساه ورکړې ده.
د پروان امنیې قوماندانۍ ویلي چې دویمه پېښه له سړکه د یوې کوروللا موټر د اوښتو له امله شوې چې په پایله کې یې دوه کسان ټپیان شوي دي.
د مسئولینو په وینا چې د دې پېښې ټپیان د پنجشیر ولایت اوسېدونکي وو او د درملنې په موخه د پروان ملکي روغتون ته وړل شوي دي.
له تېرو درېو کلونو راهیسې د هېواد په تقریباً ټولو ولایتونو کې ترافیکي پېښې په کمسارې توګه زیاتې شوې چې ستر لاملونه یې د چلوونکو بې‌احتیاطي، خراب سړکونه، ګړندی تګ او د ترافیکي اصولو نه‌مراعاتول بلل شوي دي.

## اظهارات بی‌اساس تأثیری بر زندگی...

را سپاس‌گزاری کرد، اما موضوعی که در شرایط کنونی با اهمیت و تأثیری مثبتی برجامعه تازه از جنگ بیرون شده افغانستان دارد، همکاری بی‌دریغ تجار و عرضه کنندگان مواد اولیه با نظام حاکم است که باید در راستای کاهش قیمت‌های مواد اولیه و رعایت انصاف وخود گذری، چالش‌های اقتصادی را برطرف و این کوله‌بارسنگین را از شانه‌های ملت دردمند کشور، دور سازند و این راثابت نمایند که تاجران و عرضه کنندگان مواد اولیه وضروری هم درهمچون شرایط به نوبه خود، ادای رسالت می‌نمایند.

Shariat
Daily

Shariat
Published by
Islamic Emirate of Afghanistan
Eng, Uzair Baryaly ، Director of Gov.dailies
0202526340
Chief Editor : Farooq Ghaljai/ 0778635852
Email: info@shariatdaily.com
WWW.shariatdaily.com ویب سایت:

شریعت
د دولتي ورځپاڼو رئیس:
انجنیر عُزیر بریالی / ۰۲۰۲۵۲۶۳۴۰
مسئول مدیر: فاروق غلجی/ ۰۷۷۸۶۳۵۸۵۲
مسئول سکرتر: خالد افغان/ ۰۷۷۳۰۶۲۸۳۲
د شریعت برېښنا لیک: info@shariatdaily.com
پته: اتمه ناحیه، د المپیک څلور لارې، د حضوري چمن ختیځ، کابل ـ افغانستان
**شماره توزیع و شکایات:** ۰۲۰۲۳۱۲۵۰۹ / ۰۷۶۶۰۴۴۹۶۶ / ۰۷۳۱۶۰۶۰۷۳

Monday 03 February 2025 / Established: 1995 / 2nd Season / Vol: 673

# د اطلاعاتو او کلتور وزارت مسئولینو، استادانو او څېړونکو (الصحابة في أفغانستان) کتاب مخکتنه وکړه




د اطلاعاتو او کلتور وزارت د خپرونو چارو معینیت اړوند بیهقي د کتاب خپرولو ریاست له لوري د جهادي ارزښتونو د ساتنې عمومي ریاست اړوند د سمعي او بصري ریاست د غونډو په تالار کې د ( الصحابة في أفغانستان) کتاب مخکتنه د یوې پرتمینې غونډې په ترڅ کې ترسره شوې.

یاده غونډه کې د ښار جوړونې وزارت سرپرست وزیر مولوي حمدالله نعماني، د اطلاعاتو او کلتور وزارت د خپرونو چارو مرستیال مولوي مهاجر فراهي، د هنر او کلتور مرستیال مولوي عتیق الله عزیزي، د اسلامي امارت پخواني ویاند او د ملي دفاع وزارت سرمفتش مفتي لطف الله حکیمي، د بیهقي کتاب خپرولو رییس مولوي عبدالعلیم ځانواک، د علومو اکاډمۍ غړو، د کابل پوهنتون استادانو، ګڼ شمېر علماوو او د رسنیو استازو برخه اخیستې وه.

د غونډې د پیل وینا کې خبیب غفران بیهقي ریاست د لاسته راوړنو او فعالیتونه وستایل.

ښاغلی غفران زیاته کړه چې افغانستان په اسلامي تاریخ کې د لومړي ځل لپاره د بیهقي کتاب خپرولو ریاست له لوري د قرانکریم ۱۸ بېلابېل دولونه چمتو او ۱۲ ډوله یې تر اوسه چاپ شول، چې د صحافت، ډیزاین، خطاطۍ، میناتورۍ، متن لیکنې، او چاپ چارې د هېواد په داخل کې ترسره شوې دي.

د خپرونو چارو مرستیال مولوي مهاجر فراهي په خپله وینا کې وویل چې نننۍ غونډه په معنوي لحاظ ډېره باارزښته ده، لیکوالان ... ۳مخ

## نړۍ ځار




### ابو احمد الجولاني ریاض ته پر بهرني سفر ولاړ



د سوریې د لنډمهالي حکومت مشر ابو احمد الجولاني واک ته له رسېدو وروسته په لومړي بهرني سفر سعودي عربستان ته ولاړ.

د سعودي دولتي رسنۍ ویلي چې الجولاني به په خپل سفر کې د سعودي عربستان له ځایناستي محمد بن سلمان سره وګوري.

یاده دې شي چې ابو احمد الجولاني د تحریر الشام ځواکونو مشر دی چې د بشار الاسد د رژیم له نسکورېدو وروسته یې واک په لاس کې واخیست.

نومړي شاوخوا یوه اوونۍ وړاندې د انتقالي حکومت د ولسمشرۍ واکې په لاس کې واخیستې.

**واشنګټن:**

### اوکراین کې دې له اوربند وروسته ټولټاکنې وشي

د اوکراین لپاره د امریکا د ولسمشر ډونالډ ټرمپ استازی کیټ کلاګ وایي، چې امریکا په اوکراین کې له اوربند وروسته د ټاکنو غوښتونکې ده.

نومړي له روېټرز سره په خپلو خبرو کې ویلي، چې اوکراین د روان کال تر پایه او په راتلونکو څو میاشتو کې له روسیې سره په اوربند سلا وکړي.
اوکراین له ۲۰۲۲ میلادي کال راهیسې له روسیې سره په جګړه کې ښکېل دی، چې په ترڅ کې یې زرګونه کسان وژل شوي او میلیونونه خلک بې ځایه شوي دي.



### کانادا آماده مقابله با تعرفه ۲۵ درصدی وضع‌شده توسط ترمپ است

پس از اجرایی شدن فرمان دونالد ترامپ، رئیس جمهور امریکا در پیوند به وضع مالیات ۲۵ درصدی بر کالاهای کانادایی، جاستین ترودو نخست‌وزیر مؤقت کانادا به آن واکنش نشان داده است.

نخست‌وزیر مؤقت کانادا افزوده که کشورش خواستار وضع چنین تعرفه‌ای نبود اما برای مقاومت در برابر آن، آماده است.

او همچنان تأکید کرده که امروز در مورد وضع مالیات یادشده توسط رئیس جمهور امریکا با مردم کانادا، صحبت خواهد کرد.

جاستین ترودو از گفت‌وگوهایش با اعضای کابینه دولت کانادا و همچنان رئیس جمهور مکزیک، خبر داده است.

دونالد ترامپ، رئیس جمهور امریکا فرمانی را اجرا کرده که بربنیاد آن بر کالاهای وارداتی از کانادا به این کشور ۲۵ درصد و بر انرژی وارداتی از آن ۱۰ درصد مالیه وضع می‌شود.

### صهیونست رژیم یو فلسطینی ځوان شهید کړی

فلسطیني چارواکي وایي، چې صهیونېست رژیم یوې بې پیلوټه الوتکې په برید سره په جنین ښار کې یو ۱۴ کلن هلک شهید کړی دی.

فرانسپرېس خبري اژانس د جنین والي کمال ابوالرب له قوله ویلي، چې دغه تنکی ځوان او دوه نور کسان په سړک روان وو، چې د اسراییلو بې پیلوټې الوتکې هدف ګرځولي دي.

د فلسطین ختیځې ترانګې او د جنین ښار سیمه له ۱۹۶۷ کاله راهیسې د اسراییلو رژیم اشغال کړې ده.



## ۱۴۱ تن افغان از زندان‌های پاکستان آزاد شدند

وزارت امور مهاجرین و عودت‌کنندگان می‌گوید، ۱۴۱ تن از شهروندان افغان از زندان‌های پاکستان آزاد شدند.

بربنیاد خبرنامه، در میان شهروندان آزادشده افغان زنان و کودکان نیز شامل‌اند.

وزارت امور مهاجرین افزوده که زندانیان آزادشده افغان روز گذشته از طریق تورخم... ص۳



## بررسی از روند کار بخش اول سرک کابل-لوگر



هیئت نظارت و بررسی تنظیم برنامه ها و پروژه های شاروالی کابل دیروز از جریان کار ساختمان بخش اول سرک کابل-لوگر که چندی قبل از سوی شاروالی کابل آغاز شده بود دیدن نمود.

به گفته آنها کار این پروژه درنخست که شامل کندنکاری، خاک برداری و هموار کاری مسیر این سرک است به سرعت جریان دارد و قرار است که قبل از موعد آن تکمیل شود.

کار ساختمان بخش اول سرک کابل - لوگر از منار نجات الی ساحه چرخ آب در چهار خط به طول ۷ کیلومتر و با عرض ۶۰ متر شامل جزئیات یک سرک معیاری بوده که در مدت ۱۷ ماه آینده به صورت اساسی و معیاری تکمیل خواهد شد.

با تکمیل شدن کار این سرک، زمینه رشد اقتصادی و معیاری زون جنوب شهر کابل فراهم شده و برای توسعه زیرساخت های ترافیکی و ترانسپورتی از اهمیت خاص برخوردار است.

## نیمروز کې د ځینو کانونو څېړنه کېږي

د کانونو او پټرولیم وزیر ملا هدایت الله بدري نیمروز ولایت ته د سفر په ترڅ کې د یاد ولایت چهار برجک ولسوالۍ د ګود زرې سیمې د لیتیم کان څخه لیدنه کړې.

نومړي د یاد کان د سروې په موخه د انجنیري ټیم ته سپارښتنه کړې، چې د دې کان څېړنه وکړي.
د کانونو وزیر د دې ترڅنګ د هلمند خانشین یورانیمو او دېشو ولسوالۍ د بېلابېلو کاني سیمو هم لیدنه کړې او د دغې کان د سروې په اړه یې لازمې سپارښتنې کړې دي.

دا په تېرو څو کلونو کې لومړی ځل دی، چې د هېواد د یورانیمو او لیتیمو کانونو په اړه څېړنې کېږي.

## پکتیا کې پر ۸۰ کورنیو د خیاطۍ وسایل وېشل شوي



**شریعت:** هېواد کې د کار کمښت یو له هغو ننګونو دی، چې له ډېر پخوا راهیسې ورڅخه افغان ملت کړېږي. په دې برخه کې تازه د کار او ټولنیزو چارو وزارت امارتي ورځپاڼو ته ویلي چې پکتیا کې یې له ۸۰ اړمنو کورنیو سره د ۷۲۰۰۰۰ افغانیو په ارزښت د خیاطۍ وسایل وېشلي دي.

د دغه مرستو په اړه د یاد وزارت په خپره شوې اعلامیه کې راغلي: د پکتیا ولایت د کار او ټولنیزو چارو ریاست په هڅو؛ د یاد ولایت مرکز اړوند رباط او احمدآبه ولسوالۍ کې ۸۰ اړمنو کورنیو ته د ۷۲۰۰۰ افغانیو په ارزښت د خیاطۍ وسایلو مرسته د یو شمېر مسئولینو په شتون کې ووېشل شوه؛ دغه غونډه کې د یاد ریاست رئیس محمد رحیم نصرت له DAWEO... ۳مخ

## تجهیز کتابخانه‌مرکزی پوهنتون هرات با یک سالون کنفرانس




کتابخانه مرکزی و سالون کنفرانس‌های پوهنځی اداره و پالیسی عامه پوهنتون هرات با حضور مولانا عبدالغنی حقانی رئیس پوهنتون هرات، داکتر علی اوزگون اوزتورک، رئیس دفتر آسیای میانه و قفقازهای ترکیه، داکتر بلال امره مستشار ... ص۳

## فاریاب کې هم صنعتي ښارګوټي ته ځمکه ځانګړې شوه

د فاریاب ولایت په دولت اباد ولسوالۍ کې د عالیقدر امیرالمومنین حفظه الله د ځانګړي فرمان له مخې د صنعتي ښارګوټي لپاره زر جریبه ځمکه ځانګړې شوه.

د یاد ولایت د کرنې،... ۳مخ

